وي، چې د دې نشې روږدي هڅه راتوليږي او ځانونه په نشه کې غرکوي. د هغې اغيزه د ايپنو په څير ده. اپين او نور نشه راوړونکي مواد چې نه ايپنو نه جوړيږي، تقريبا يو ډول اغيزې لري. نشه کونکی ځان خوشاله محسوسوي. خو د چندو په نشه کې خوښي او مستي نه وي، بلکې انسان ته يو ډول د



د مدک روږدي (معتادين)

خاصه سستي او ستړيا پيدا کيږي، چې حتی د لاس او پښو ښوروړل ور ته ګران کار ښکاري.

## داتوره:

دا بوټی په خپل سر په ځينو سيمو کې زرغونيږي، اغزي لرونکې غوزې لري، کله چې يې غوزې پخې شي له هغې نه يې تخم راوباسي چې ډير نشه راوړونکی او زهرجن دی. په هغو سيمو کې چې داتوره پيدا کيږي، د هغې سيمې اکثر خلك يې استعمالوي، داتوره د ګنديرو (زهرو) په ځای هم استعماليږي.
ځيني خلك هغه د خپلو مخالفينو يا دښمنانو د بې هوښه کولو يا وژلو له پاره هم استعمالوي.

## د داتورې اغيزې:

د داتورې د نشې په وسيله سړی له ځان نه پردی کيږي، اپلتې (هزيان) وايي او د خيال په نړۍ کې ډوبيږي. کله خاندي او کله ژاړي. که ډيره اندازه يې استعمال شي، د بې هوښۍ او بې سدۍ په عالم کې د مړينې سبب کيږي.

## کوکين:

په جنوبي امريکا کې د کوکا په نوم يوه ونه پيدا کيږي، چې د هغې له پاڼو نه کوکين لاس ته راځي.په پيل کې ئې له هغې څخه د پوستکي د بې حس کولو او ځينو عملياتونو له پاره، لکه د بې حسۍ درمل؛ استفاده کوله، همدا راز د سترګو په ځينو درملو کې چې د څاڅکو په څير جوړ شوي وي، هم کوکين شامل وي، خو ځيني خلك دا درمل هم د نشې له پاره استعمالوي.
ځيني خلك کوکين په پان کې اچوي او ځيني ئې لکه د پوزې نسوار استعمالوي. په لويديزو هيوادونو کې ئې د هيروينو سره يوځای په سګرټ کې څکوي. د کوکين زيات استعمال ممکن د پوزې، ستوني د سوري کيدو سبب شي، هاضمه خرابوي، په پوستکي کې دوړو خارښت لرونکو دانو سبب کيږي. همداراز کوکين دماغي توازن له مينځه وړي.



د چنډو یوه ساقي خانه

## نیمه کیمیاوي نشه راوړونکې مواد:

هغه نشه راوړونکو موادو ته وايي چې د طبيعي او مصنوعي موادو له يوځايوالي څخه لاس ته راځي. په ځانګړو لابراتوارونو کې په ساينسي طريقو سره په طبيعي نشه راوړونکو موادو کې ځينې نور کيمياوي مواد اچوي او د هغوی

ظاهري بڼې ته تغيير ورکوي، چې نشه راوړونکې خاصيت ئي ډير زياتيږي. په حقيقت کې دا همغه طبيعي مواد دي خو څرنګه چې د کيمياوي عملي په وسيله ئي شکل تغيير کوي نو له همدې کبله د نيمه کيمياوي مخدره موادو په نامه ياديږي، له دې ډلې څخه هيروئين او مارفين هر چاته معلوم دي چې په دې ورخو کې ئي نړيوالو او زموږ هيواد ته عمده ستونزه جوړه کړې ده، نو له همدې کبله لږ په تفصيل سره پرې خبرې کيږي.

## هيروئين Heroin

لکه چې مخکې وويل شول، له اپينو څخه مورفين جوړيږي، په مورفين کې د کيمياوي طريقو په ذريعه څه نور مواد ورزياتيږي او له هغې څخه هيروئين جوړوي. داسې وويل کيږي چې د مورفينو د معتاد کيدو د تاثير د کموالي له کبله تصادفاً هيروئين جوړ شو، يعني چاچې غوښتل چې د مورفينو اعتياد کونکې تاثير کم کړي، ناڅاپه هيروئين ترې جوړ شول. چې د هغې د معتاد کيدو تاثير له مورفينو څخه ډير زيات وو. وروسته خلکو په تجارتي سطحه د هغې توليد پيل کړ.

## د هيروئينو مينځ ته راتلل:

تر ۱۹۷۹ کال پورې په صوبه سرحد کې کرونده ګرو د حکومتي لاينسس په درلودلو يوه ټاکلې اپين توليدول، چې د دولتي ټيکه دارانو په وسيله د درملو فابريکو او اپين راجستر شوو روږدو ته ورکول کيدل. خو کرونده ګرو په پټه د اپينو ډير مقدار توليداوه او هغه ئي د صوبه سرحد په ځينو برخو کې پټه زيرمه کول، چې دغو برخو د نورو هيوادونو له پاره د اپينو د خرڅلاو د آزادو منډيګانو حيثيت غوره کړ. خو هغه مهال چې په پاکستان کې پر ټولو مخدراتو موادو بنديزونه وضع شول، د هغوې له پاره چې په سلګونو ټنه اپين ئي زيرمه کړي و، د هغوى رابهر کول مشکل شو، نو هغوې اپين په هيروينو بدلول پيل کړل، چې په دې ډول د اپينو ډير وزن او مقدار په يو کوچني څيز بدل شي. له دولس کيلو ګرامه اپينو څخه يو کيلوګرام هيروئين جوړيږي، چې په بيه او نشه کې څو ځله له اپينو ګران دي، چې په دې ډول د هيروئينو رواج عام شو او نسبت نورو هيوادونو ته ارزانه لاس ته راتلای شي.

## هیروئین څه شی دی؟

اپین چې له هغې څخه هیروئین جوړیږي تور رنګ لري، خو د کیمیاوي تعاملاتو په وسیله نسواري یا سپین رنګ غوره کوي. ښه هیروئین سپین رنګه وي چې معمولاً نور هیوادونو ته لیږل کیږي. هغه هیروئین چې په پاکستان کې پلورل کیږي، نسواري رنګه وي چې نشه ئې ډیره تیزه نه وي او بیه ئي هم ارزانه وي، خو په نورو هیوادو کې ګران پلورل کیږي، له همدې کبله قاچاق وړونکي له دغې ناروا لارې نه د ډیرې ګټې لاس ته راوړلو له پاره پخپل او د نورو زرګونو کسانو په ژوند لوبې کوي، او د نړی په ګوټ ګوټ کې نوې زلمیان او خوانان د تباهی کومې ته غورزوي.

## هیروئن کله رواج شول:

شل کاله مخکې په پاکستان او افغانستان کې څوك د هیروئینو له نوم سره اشنا نه وو، په بهرنیو هیوادونو کې دا وبا د معتبرو کورنیو په غړو کې خپره شوه، څرنګه چې د لوړې بیې له کبله هر چا د هغې د اخیستلو توان نه درلود، د هیروئینو د تولید د ډیروالي له کبله د هغې بیه هم راټیټه او د استعمال ساحه ئي هم پراخه شوه. په پیل کې هغه چا هیروئین استعمالول چې پخوا په نورو نشو روږدې وو، خو وروسته نورو خلکو هم د هیروئینو استعمال پیل کړ، په دې وختونو کې اوریدل کیږي چې حتی د ښوونځي زده کونکي هم ددې بلا په لومه کې ښکیل شویدي. هلکان او سړي که یوطرف پریږدو، جنکۍ او ښځې هم په دې بده بلا اخته شوي دي، د کلیو او باندو خلك هم هیروئین استعمالوي. د یوې څیړنې له مخې یوازې په پاکستان کې اوولس لکه خلك د هیروینو روږدې دي، چې په دې ډله کې له یو لك څخه زیات ئي کلیوال او بانده وال خلك دي.

## د نشه ئي احساسات:

د هیروئینو روږدي له کورنی او نورو ټولو مسوولیتونو څخه بیخي بې پروا کیږي، دومره بې احساسه کیږي چې غم او خوښي پرې هیڅ اغیزه نه کوي هغه یوازې یو خواهش او هیله لري او هغه د هیروئینو ترلاسه کول دي او بس.

د نشې په وخت کې ئي په وجود کې لږ مستي پیدا کیږي، چې د وخت په تیریدو سست او بې همته کیږي، داسې چې ته به فکر کوي په وجود کې ئې هیڅ ساه نشته، د دغه حالت د له مینځه وړلو له پاره بیا هیروئینو ته پناه وړي.

د دې نشې روږدې له درې-څلور ساعته خوب وروسته بیا د یو خوراک نشي په لټه کې کیږي، هر څومره ئې چې د نشې وخت ډیر شوې وي، هومره د هیروئینو مقدار ډیر وي.

## کم عمره روږدي:

په لومړنیو راپورونو کې ویل شوي و. چې د ۱۸ او ۳۰ کلنو مینځ کې ځوانان د هیروئینو ډیر روږدي دي، چې په دې ډله کې زیاتره د ښوونځي زده کونکي او کسبه شامل دي، خو اوس د یوې نوي احساس له مخې ښودل شوې ده چې د ۱۰ او ۱۲ کالو تر منځ ماشومان هم د هیروئینو روږدي دي چې په دې ډله کې هغه ماشومان چې په فابریکو، ورکشاپونو او هوټلونو کې کار کوي شامل دي، دا کم عمره ماشومان ټوله ورځ کار کوي او د بیلابیلو خلکو سره مخامخ کیږي؛ هر ډول خبرې اوري او تر تاثیر لاندې ئې راځي، ځینې وخت د نورو په لومه کې ښکلي او خپله د ټولي ورځ ګټه د نشې قرباني کوي. کله چې په دې تباه کوونکې بلا اخته شول په ډیر مشکل له هغې څخه خلاصیږي. په هغو ماشومانو کې چې عمر ئې له لسو کالو ټیټ دی هم د هیرئینو د نشې یادونه شوی ده.

## د نشي اساس يا بنسټ:

که سګرټ د نشي اساس يا بنسټ ومنو، غلطه خبره به مو نه وي کړي. په پيل کې ځوانان يوازې د فيشن او ډول له خاطره سګرټ پيل کوي، څه وخت وروسته يې په دې نشه بنه نه کيږي، نو د نوې مزې له پاره په خپل سګرټ کې چرس اچوي، کله چې چرس هم ورته عادي شول، نو د بلې قوي نشې په لټه کې کيږي، اخر ني کار ډيرې زهرجنې نشې يعنې هيروينو ته رسيږي.

## د هيروئينو د نشي د عام کيدلو عوامل:

١- د هغې لږه اندازه ډيره نشه توليدوي، په اسانی پټيږي او انتقال ئې هم ساده دی.

٢- هيروئين کوم ځانګړی او تيز بوی نه لري، په عادي ډول د خلکو په مينځ کې لکه سګرټ څکول کيدای شي، هغوی چې هلته حاضر وي کيدای شي فکر وکړي چې ګوندې سګرټ څکوي، خو که څوك ورته لږ بنه ځير شي د هغې د بوی فرق کولای شي چې د سګرټ له بوی سره فرق لري.

٣- په اسانې پيدا کيږي، تقريباً په هر ځای کې ئې خطرناك او غير قانوني پلورونکي موجود دي.

## په مغزو باندې ذ هيروئينو زهرجنه اغيزه:

له څکولو وروسته هيروئين وينې ته جذبيږي او له همدغې لارې د مغزو نريو رګونو ته رسيږي او د مغزو په کارونو کې خلل پيدا کوي، ماغزه په بنه ډول خپل کارونه نه شي کولی د پوهې او فکر کولو قدرت کمزورې کيږي، د دغه عمل په تکرارولو د سړي دماغي حالت خرابيږي، ځينې ببخي ليوني کيږي. خو د ځينو ذهني توازن پر ځای وي، يوازې د پريکړې او تصميم نيولو قدرت ئې له مينځه ځي.

## د وجود په نورو برخو د هیروینو اغیزه:

نشه د انسان په هاضمي سیستم بده اغیزه کوي، انسان ته لږ خوراکي (بې اشتهائي) پیدا کیږي، معده ئې کمزورې کیږي، څرنګه چې دا ماده د میتیازو له لارې خارجیږي، له دې امله د میتیازو لارې (بولې طرق) متأثره کوي. د میتیازو په کڅوړه او نورو بولي غړو کې د میتیازو د رکودت له کبله دا زهرجنه ماده پر دغه غړو منفي اغیزه کوي او د هغو د کمزورۍ سبب کیږي.

د نشه کوونکي سترګې همیشه وچې وي، د شپې له پلوه د سترګو دید کمزورې کیږي.

## د نشه کوونکي ټولنیز حالت:

څرنګه چې د هیروئینو روږدي له نورو څخه په پټه هیروئین استعمالوي، نو له همدې کبله ورو ورو له ټولنې څخه لرې او ګوښه کیږي او د کمترۍ په احساس اخته کیږي. د روغتیا د خرابوالي له کبله په کورنۍ بار کیږي. کار نه شي کولاې او څه چې زیرمه لري، هغه له نشې نه قربانوي. د خپلې نشې د لاس ته راوړلو له پاره له هیڅ ډول بد کار څخه ځان نه ژغوري. خپل ټولنیز حیثیت له لاسه ورکوي، ټول دوستان او خپلوان تري ځان لرې ساتي.

د نشه یي اقتصادي حالت او وسایل:

کله چې یې د جیب پیسې خلاصې شي د هغو خلکو په لمسه چې نشه راوړونکي مواد ترې اخلي، د نشه راوړونکو مواد په خرڅلاو پیل کوي، چې د نشې ضرورت یې رفع شي. په دې ډول دا بده ناروغي له یو سړي څخه نورو ته خپریږي او یا نورو جرمونو ته مخه کوي. د خپلې نشې د پوره کولو له پاره یا غلا کوي او یا بله ګناه، په دې ډول یوه بدي د څو نورو بدیو زیږنده کیږي.

## کیمیاوي نشه راوړونکې مواد

اوس موږ د هغه موادو په هکله چې په لابراتوارونو کې د کیمیاوي طریقې په وسیله جوړیږي خبرې کوو. په دې ډله کې ارام راوستونکي او خوب راوړونکي درمل شامل دي، پرته له یادو شوو درملو الکول (شراب) او نور منشیات هم په کیمیاوي طریقو جوړیږي، چې له دې جملې څخه ځینې نشه راوړونکې مواد دا دي:

## شراب:

له ډیر پخوا څخه د شرابو استعمال په مختلفو هیوادنو کې رواج لري او مختلف خلك له هغې څخه ګټه اخلي، زموږ په هیواد کې قانونا او مذهبا د شرابو په څښلو بندیز لګیدلی دی، خو د هغې غیر قانوني استعمال لا جریان لري. اوس په معتبرو کورنیو کې د خوښې نشه شراب دي، هغوی چې د ښو کمپنیو د شرابو د اخیستلو توان نه لري، له بدلو شرابو څخه چې همدلته جوړیږي استفاده کوي او په دې ډول خپله روغتیا زیانمنوي.

## خلك ولې شراب څښي؟

شراب خراب بوی او بد خوند لري، نو ولې خلك دا بدبویه او بې خونده مواد استعمالوي؟ شراب ډیر ژر د خلکو ماغزه متأثره کوي. ځینې خلك فکر کوي چې له شراب څښلو وروسته مؤقتا د سړي په مغزو کې تحرك پیدا کیږي او سړې ټولو هغو کارونو ته چې مخکې ئې نه شول کولای چمتو کیږي. په مؤقت ډول دا په ځان اعتماد په سړي کې پیدا کوي خو د هغو په همیشني استعمال سره د سړي فکر، پوهه او انساني احساس، چې انسان ورته ډیره اړه لري کمزوری کیږي او په پای کې له منځه ځي.

## د شرابو اغیزې:

د شرابو د پرله پسې استعمال له کبله د وجود ډیر غړي زیانمن کیږي، لکه چې مخکې وویل شو د هغو لومړی اغیزه په معده او مغزو پریوزي، چې له همدې کبله ځو نور حواس لکه د خبرو کولو حس، د لیدلو او

اوریدلو حواس، ذهانت او د پریکړې او تصمیم نیولو حس کمزورې کیږي.
زیاتره وروسته له شراب څښلو څخه د سړي ژبه بنده بنده کیږي، سترګې یې سرې کیږي او اشتها یې کمیږي د لارې تللو ستونزه ورته پیدا کیږي، لاسونه ئې ریږدي، اکثرا کانګې کوي او نور.
د ننني غړي هم اغیزمن کیږي په ځانګړې ډول پښتورګي او ینه. د پښتورګو د پرله پسې لمسي (تحریك) له کبله د سړي تشې متیازې ډیریږي، د ینې دندې خرابیږي چې په پای کې د ناروغ د له مینځه وړلو سبب کیږي. د هغو خلکو چې د شراب څښلو یې ډیر وخت کیږي، په مغزو یې عجیب و غریب فکرونه ګرځي، او یا عجیب و غریب غږونه اوري لاس او پښې یې په خپل واك کې نه وي، زړه ئې هم سم کار نه کوي. د شرابي له خولې او بدن څخه دومره بد بوی ځي، چې د نورو د تکلیف سبب کیږي، خو پخپله ئې ورته پام نه وي.

## ارامونکي او خوب راوستونکي درمل

خدای(ج) شپه د خوب او استراحت له پاره پیدا کړي ده، یو نارمل سړې پر ټاکلي وخت کې بیده کیږي، خو ځینو خلکو ته د ځینو ستونزو له کبله په اسانی خوب نه ورځي، نو له دې کبله خوب راوړونکې درمل استعمالوي او وروسته په هغو روږدی کیږي، پرته د خوب له درملو خوب نه ورځي او نه ئې جسم او دماغ سکون احساسوي. لږ وخت وروسته د دغه درملو کم مقدار په اغیزه نه کوي، نو له همدې کبله د درملو مقدار ډیروي.

## په مغزو باندې یې تاثیرات:

د خوب راوستونکو درملو د پر له پسې استعمال له کبله د مغزو په فعالیتونو کې کموالې پیدا کیږي، له خوب وروسته انسان ځان ارام نه محسوسوي، بلکې ستړې او ستومانه وي، د پوهې ، پریکړې او تصمیم قوه یې کمزورې کیږي. له عادت وروسته ورته ددغو درملو پریښودل اسان کار نه وي، که دا درمل استعمال نه کړي، بیا ټوله ورځ یې اعصاب



# د نشې زهر

په دې ورځو کې دا خبره عامه ده چې ګوندې د نشه يېزو څيزونو استعمال ډېر شوی دی، د نشه کونکو تعداد ورځ په ورځ ډېريږي. د دولت او ځينو نورو غيردولتي ادارو د نشو د مخنيوي له هڅو سره سره د هغې استعمالونکي په ډېريدو دي. نو دا پوښتنه پيدا کيږي چې دا نشه څه شی دی؟ خلك ولې د هغې روږدي (معتاد) کيږي؟ په وجود څهٔ اغيزه کوي او له هغې څخه ځان څنګه ژغورلای شو؟ راځئ چې وګورو.

## نشه او عادت

په ځينو څيزونو کې لږ و ډېره نشه موجود وي، مثلاً تنباکو، سګرټ، چيلم، نسوار، چاى، قهوه او نور چې د هغو د پر له پسې استعمال له کبله خلك د هغو روږدي کېږي، که څه هم په نوموړو شيانو عادت کيدل ښه کار نه دی، خو يو شمير نور مواد وجود لري چې د انسان ژوند تباه کوي لکه: مارفين، هيروئين ، افيون، چرس، بنګ او نور.

## د نشې او عادت تر مينځ څه فرق دی؟

عادت هغه حالت ته وايي چې د انسان د وجود پورې محدود وي او د هغې پريښودل په وجود ناوړه اغيزه نه کوي.
نشه هغه حالت ته وائي چې سړی له ځان او چاپيريال څخه بې خبره شي او د خپلې نشې د لاس ته راوړلو لهٔ پاره، پرته له نشې د بل هيڅ شي په فکر کې نه وي، دا سړی د کورنی او ټولنې په اوږو بار وي، او د نشې د پريښودلو په صورت کې ورته جسمي او روحي ستونزي پيدا کيږي.

خراب وي او د شپې خوب نه ورځي په ځينو خلکو کې د ليونتوب د حملو سبب کيږي. څرنګه چې د دغسې سړي ماغزه سم کار نه کوي، کله ئې دا هم سير وي چې نن ئې څه خوړلي دي؟ د دغو درملو زيات خوراك وژونکی دی. د ځينو له پاره چې ژوند ورته سخت شوې وي. ددې درملو زيات مقدار يوځاى خوري چې په همیشني خوب بيده شي. د مريضی او ضرورت په وخت کې، د ډاکټر له طرفه يې کم مقدار توصيه کيږي، چې زيانمن نه وي، خو کوښښ دې وشي چې څوك پرې روږدې نه شي.

## کودين Codeine او کوريکس

دا مواد د ټوخې ، والګې او د تبې د نورو ناروغيو په درملو کې شامل وي، خو ځيني خلك دا درمل د الکولو د شته والي له امله استعمالوي. په دې ورځو کې د دې درملو په خرڅلاو او اخيستلو هم بنديز لګيدلی دی.

## مارفين او پتيدين Morphine and Pethidine

له دې درملو څخه د عملياتو له پاره د ناروغ د بې سده کولو له پاره ګټه اخيستل کيږي، او يا د ډيرو نارامو ناروغانو د ارامولو له پاره يې ډاکټران استعمالوي، خو څرنګه چې هر ډول نشه راوړونکي مواد، نشه يان د نشې له پاره استعمالوي نو، له دې درملو څخه هم د بنې لارې پر ځاى بده استفاده کيږي.

## ميتادون :Mithadone

دا درمل له اپينو نه جوړيږي، په افغانستان او پاکستان کې دومره عام نه دي ، خو په نورو هيوادونو کې دا درمل د هيروئينو د تداوي په غرض معتادينو ته ورکول کيږي، ددې درملو د پريښودو په وخت کې روږدې هغومره نه په تکليف کيږي. څومره چې د هيروئينو د پريښودلو نه کيږي،

خو ددې درملو خطر هغه وخت ډېر زيات وي کله چې دا پرته د ډاکټر له مشورې په خپل سر وخوړل شي.

## راکت او مېنډرېکس (Mandrax)

دا دوه څيزونه يوازې د نشې له پاره جوړ شوي دي، په درملتونونو کې د تابليت او يا کپسول په شکل خرڅيږي، دواړه ډېر زيان رسونکي او مضر دي. د دې د روږدو جسم او دماغ دواړه ژر له کار نه لويږي، رګونه او نسجونه يې کمزوري کيږي او خپل هوش او حواس له لاسه ورکوي.

## ايل اس ډي LSD (Lysergide):

دا هم له کيمياوي نشه يېزو موادو څخه دي، چې يوازې د نشې له پاره جوړ شوي دي. د ايل اس ډي روږدي ځان په بله نړۍ کې محسوسوي، کله ځان په هوا کې ګوري او کله هم د سمندر په تل کې. د يو خبر له مخې چې څو کاله مخکې خپور شوی ؤ، د ايل اس ډي څو روږدو زلمو دومره زيات د لمر لورې ته کتل پيل کړل، تر څو يې سترګې بيخي ړندې شوې.

## د نشې د پرېښودلو حالت

د هر ډول نشې د پرېښودلو په وخت کې روږدي ته ډېرې ستونزې پيښيږي، د نړۍ پر مخ هيڅ شی ور ته ښه نه برېښي، له ناروغانو څخه يې حالت بدتريږي، خاصتا د هيروئينو روږدو ته د هيروئينو پرېښول ډېر ګران وي، هغوی په داسې لوی مصيبت اخته کيږي، چې پرته د هيروئينو له ګنديرو (زهرو) په نړۍ کې يې بل هيڅ شی علاج نه شي کولای، يوازينۍ غوښتنه يې هم دا وي، چې له هرې لارې کيږي، يو خوراک هيروئين ورته وروړسيږي، ژاړي، رپيږي، ټول هډوکي يې درد کوي، نارامي يې له حد نه وځي. له پوزې او خولې يې اوبه جاري کيږي. خارښت ورته پيدا کيږي او ځان ډېر په زور زور ګروي، کله چې يې کورنۍ دا حالت وګوري، د هغه د علاج هڅې پيل کوي.

## علاج او درملنه

د روږدو (معتادینو) د علاج او درملنې له پاره په پاکستان اړ نورو هیوادونو کې شخصي مرکزونه پرانستل شوي دي، همدا راز په دولتي روغتونونو کې هم ورته وارډونه جوړ شوي دي، خو دا مرکزونه د ټولو پیښنو له پاره بس نه دي. په وارډونو کې یوازې څو بستره د دې پیښنو لپاره مختص شوي وي، خو د نشه ییزو موادو د روږدو شمیر په دې ورځو کې سلګونو زرو ته رسیږي. د شخصي مرکزونو لګښت خورا لوړ وي، هر څوك د دې توان نه لري، چې هلته خپل روږدي معالجه کړي. په دې مرکزونو کې په دوه اوونیو کې تقریبا دوه زره پاکستانی کلدارې لګیږي، حال دا چې په دې دوه اوونیو کې یې علاج هم نه بشپړ کیږي. داسې ویل کیږي، چې په نورو هیوادونو کې د داسې خلکو درملنه تر دوو کالو پورې وخت نیسي، تر هغې چې بیخي ښهٔ شي او په ټولنه کې د یو ښه اوسیدونکي په حیث خپل ځای پیدا کړي.

حکومت ته په کار ده، چې د روږدو د شمیر په نظر کې نیولو سره، د روږدو د درملنې او علاج لهٔ پاره متعدد مرکزونه جوړ کړي، او ځانګړي روغتونونه د هغوی لهٔ پاره وقف کړي، تر څو هر څوك چې د درملنې غوښتونکي وي، په اسانی ترې ګټه واخلي.

په نننیو شرایطو کې داسې مرکزونو او روغتونونو ته سخته اړتیا لیدل کیږي.

د نشه ییزو موادو د روږدو درملنه له نورو ناروغانو سره توپیر لري، او د هغوی معالج ډاکټر هم له نورو ډاکترانو نه بیل وي، په هغوی کې د روحي او دماغي ناروغیو متخصصین هم شامل وي. د ناروغ درملنه سمدلاسه نه پیل کیږي، بلکې د نشې د اثر تر ختمیدو پورې انتظار کیږي، د روږدې وینه او تشې میتیازې په لابراتوار کې کتل کیږي، چې د نشې اثرات پکې شته که ختم شوي دي چې دا له اتو نه تر لسو ساعتو پورې وخت نیسي.

د نشې د پریښنولو حالت په ناروغ باندې د ۳٦ نه تر ٤٨ ساعتو پورې

مستولي وي، چې دا وخت په ډېر مشکل تېرېږي. ځينې خلك په دې مرحله کې علاج پرېږدي، او بيرته نشه پيل کوي، په حقيقت کې د هغوی د څارنې له پاره دا وخت ډېر ضروري دی. ساپوهان هغوی د دې مرحلې د تکليف تېرولو ته چمتو کوي. په دې هکله به په تفصيل خبرې کيږي.

## د هيروئينې درملنه يا علاج

څرنګه چې د هيروئينو نشه ډيره سخته او عامه ده، نو له همدې کبله د هيروئينو زياتر شمير روږدي د درملنې لهٔ پاره روغتونونو ته بيايي. د دې ډول ناروغانو علاج د هغوي د نشې د وخت، جسمي حالت، د هيروئينو د استعمال مدت او د هغو د استعمال د مقدار په بنا کيږي. چې د دې ډول روږدو هم جسمي او روحي درملنه کيږي، او دواړه ډوله درملنې هم ښهٔ او هم بد اړخونه لري.

## جسماني درملنه:

### ۱- پرته له درملو:

په دې طريقه کې ناروغ په روغتون کې بستر کوي، او هيڅ ډول درمل ور ته نه ورکول کيږي، يوازې ورته پند، نصيحت او تسلي ورکول کيږي او عبادت ته هڅول کيږي. خو اکثرا د درملنې په دې شکل کې د روحي تکليفونو د پيدا کيدلو امکانات شته دی. ناروغ نه مري خو د هيرّوئينو د نه رسيدلو له کبله ذهنا فلج کيږي.

### ۲- درمل او تسلي:

په دې طريقه کې ناروغ ته هيروئين نه ورکول کيږي، خو د نورو تکليفونو له پاره چې پيدا کيږي، لازم درمل ورکول کيږي. دا ډول درملنه په اکثر روغتونونو کې جريان لري. ناروغ ته په مسلسل ډول تقريبا تر دوو مياشتو پورې د درملو د اخيستلو اړتيا وي، او په دې ترڅ کې هڅول کيږي، چې بيا نشه پيل نه کړي.



### ۳- په تدریجي ډول د نشې کمول:

په دې طریقه کې ناروغ ته ـ هغه مربوطه نشه ورکول کیږي، خو ورو ورو د هغې په مقدار کې کمی راوستل کیږي، تر هغه وخته چې د نشې اغیزه بیخي له مینځه ولاړه شي، خو په دې طریقه کې یوه ستونزه شته او هغه دا ده، چې که لږ هم د ناروغ په څارنه کې تنبلي وشي، اکثرا پټ د نشې ډیر مقدار استعمالوي، او بیرته لومړني حالت ته راګرځي.

### ٤- د متبادلو موادو په وسیله درملنه:

پدې طریقه کې هیروئین قطع کیږي او د هغو په ځای نور نشه راوړونکې مواد لکه بنګ او یا نور څه ورکوي، کله چې د هیروئینو عادت ئي پریښود، نو دا نوې نشه هم ورو ورو کموي، دا علاج اکثرا بریالی وي، خو کله کله د متبادلې نشې پریښودل هم آسان نه وي.

### ٥-اکوپنکچر:

دا د علاج یوه چینایي طریقه ده، په دې طریقه کې د وجود په ځانګړو ځایونو کې ستنې ننویستل کیږي او د نشې تأثیرات له منځه وړي. دا چې دا طریقه تر کومه حده کامیابه ده، د اکوپنکچر متخصصین په دې اړه نظر ورکولی شي.

### ٦- روحي یا ذهني درملنه:

د ناروغی روحي درملنه د یوې اوونی یا دوه اوونیو خبره نه ده، بلکې دا درملنه لږ تر لږه د یو کال نه نیولې تر درې کالو پورې وخت نیسي. د درملنې په دې طریقه کې پر ډاکټر سربیره نور خلك هم شامل وي مثلا ساپوه، ټولنیز کارکوونکې، د کورنی غړې او نور. د درملنې له دې طریقې څخه هم په دولتي او هم په شخصي کتنځیو کې کار اخیستل کیږي.

## د درملنې طریقه:

روحي درملنه معمولاً له جسماني درملنې نه وروسته پیل کیږي، خو که د ناروغ حالت ډیر خراب نه وي او یا لږ بنه شي، د جسماني معالجې

تر څنګ یې روحي درملنه هم پیل کیږي. له روحي درملنې پرته د داسې ناروغانو معالجه بشپړ نه ده.

## ۱- پند ورکول، نصیحت او پوهول:

د ناروغ د دماغي حالت له ښېړنې وروسته، هغه روحا دې ته چمتو کیږي چې د تل له پاره نشه پرېږدي. په زیات شمیر خلکو د ډاکټر خبرې د کورنۍ د غړیو په نسبت ښه اغیزه کوي.

## ۲- د ښځې او میړه سره یوځای خبرې کول:

ښځه او میړه سره یوځای کښینول کیږي، دواړو ته باید د خبرو کولو وخت ورکړل شي، وروسته بیا ناروغ هڅول کیږي چې د کورنۍ د چارو د ښه کولو له پاره نشه پرېږدي، او د یو بل په مرسته د نشې له لعنت څخه ځان وژغوري.

## ۳- د ناروغ له کورنۍ سره لیدنه کتنه:

په دې حالت کې د روږدي د کورنۍ ټول غړي سره یوځای کښینول کیږي، او له هر یوه سره ځانته خبرې کیږي، دا کار ډیر مهم او ضرور دی، هغه څوک چې نشه کوي، په خپله نشه کې ډوب او هر څه یې هیر کړي وي، خو د هغه کورنۍ چې د داسې حالت کتونکې وي. زیاته رنځیږي، او ممکن د روږدي د کورنۍ ځینې غړي له دې کبله مریضان هم شي.

که روږدي ته ددې احساس پیدا شي چې دده له کبله ئې کورنۍ څومره په تکلیف شوې ده، اکثرا هغوې ته د نشې د پریښودلو احساس پیدا کیږي او په دې هڅه کې کیږي چې له دې لعنت څخه ځان وژغوري. کله داسې هم کیدلای شي چې د کورنۍ د غړو ئې باور نه کیږي چې، ګوندې ناروغ یې په رښتیا نشه پریښې ده، نو د کورنۍ دا منفي رویه د دې سبب کیږي چې، روږدې بیا له قصده نشه پیل کړي، له کورنۍ سره د لیدنې کتنې په وخت کې باید دا خبره هم ورته یاده شي. د روږدي د درملنې له پاره یې د کورنۍ مرسته ډیره ضروري ده.

### ٤- ډله ييزې ليدنې کتنې:

په دې طرقه کې هغه روږدي چې يو بل ته ورته تکليف لري سره راټولېږي. په دې ډول ليدنو کتنو کې هغوی ددې احساس کوي چې د توني له مشابه خلکو سره مخامخ دي. يو ډول ستونزې لري، يو بل ته خپې تجربې وايي، چې څنګه کولای شي ځان له نشې څخه وژغورې، اوس څه ستونزې لري. او څنګه بايد هغه حل کړي او نور. د يو بل سره بې پردې او ازادې خبرې کوي، له يو بل نه شرم نه کوي او د ژوند تولې ترخې تجربې يو بل ته وايي، چې يو بل د نشې پرېښولو ته هڅوي.

## روحي درملنه ولې ضرور ده؟

نه شي کيدلای چې اکثر انسانان د يو بد کار له کولو نه په زور منع کړي، تر څو چې هغوی ته پخپله ددغه بدکار د نه کولو احساس پيدا نه شي، نو په همدې ډول د مخدره موادو په روږدي کې تر هغې چې پخپله روږدی د هغو د پرېښولو احساس پيدا نه کړي، له جسماني درملنې څخه ښه نتيجه لاس ته نه راځي، که په روغتون کې ورته نشه راوړونکي مواد نه ورسيږي، خو د روغتون نه بهر يې په اسانی پيدا کولاې شي.

د درملنې په ترځ کې د روږدي له کورنۍ سره په تماس کې پاتې کيدل هم ضرور دي، ځکه چې کورنۍ ئي هم داډ او تسلې ته اړتيا لري.

## لابراتواري ټستونه:

له جسماني درملنې وروسته دا ټستونه ضرور دي، که روږدې د ٤٨ نه تر ۷۲ ساعتو پورې مخدره مواد استعمال کړي وي. د دې ټستونو په ذريعه معلومېږي. له درملنې وروسته ځينې روږدي ربښتيا نه وائې، چې ګوندې بياځي نشه نه ده کړې.

د جسماني او روحي درملنو دواړو په صورت کې. يو يا دوه کرته بايد د روږدي لابراتواري ټست وشي، څرنګه چې په دې ډول به هغه احساس

کړي چې خپله نشه نه شي پټولاې. که په ټسټ کې جوته شي چې د نشې اثرات موجود نه دي. د روږدي د خوښی سبب کيږي. چې کورنی به نې اوس ومني چې هغه په ربښتيا نشه پريښي ده.

## بوختيا(د روږدي بوخت ساتل):

له جسماني درملنې وروسته، او د درملنې په ترڅ کې په کار باندې د روږدي بوخت ساتل ډير ضرور دي. ښه به دا وي چې د يو خپلوان د څارنې لاندې ورته کار پيدا شي يو څو به يې دا نه څار لاندې وي او بل به يې روږدي نه کار پيدا کړی وي. هغه چې هر څنګه کار وي. په دفتر کې وي او که بهر خو چې روږدې بوخت وساتل شي.

## هغوی چې روږدي نه دي څنګه نه نشې څخه وژغورل شي؟

۱- د کار او زيار په وسيله د پيسو پيدا کول. حرامي پيسې او يا په اسانې لاس ته راغلې پيسې سړې بې لارې او غلطې لارې ته هڅوني شي.

۲- نوو زلميانو او ځوانانو ته بايد د هغوې د جيب نه خرڅ څخه ډيرې پيسې ور نه کړل شي.

۳- د کورنی چاپيريال بايد ښه او خوښ وي. ماشومانو ته بايد ددې وخت ورنه کړل شي. چې هغوی ځان پردی وګڼي.

٤- کله کله دې د کورنی ټول غړي سره يوځاې راغونډ شي او به خبرو کې دې په اتفاق او خوښی خبرې وکړي. د نسبتاً غټو ماشومانو خبرو ته غوږ کيښودل شي. چې د هغوی له پاره دا ډيره مهمه ده. له ماشومانو سره بايد د نشو د زيانونو په هکله خبرې وشي، که تاسې په دې اړه کوم مضمون لوستی وي، هغوی هم وهڅوئ. چې و يې لولي.

٥- هغه څه چې له ماشومانو نه توقع لرئ چې و يې نه کړي، تاسې يې هم مه کوئ.

٦- پرته له ليک او لوست نه، د ماشومانو له پاره نور تفريحي پروګرامونه هم برابر کړئ. مثلا يو د خوښې کار. لکه د سپورټي شيانو راټولول. موسيقي او نور.

۷- نه هر څه مخکې ماشومانو ته د قانون پابندي ور زده کړئ.

# Poison of drugs



*Written by: Zubaida Sultana*
*Translated by: Dr. Mohd.Farid Bazger*

۸- ماشومان مو ناکامی، محرومی او مایوسی ته مه پرېږدئ. څکه چې دا لار هم د نشې په لور ځي.
۹- کوښښ وکړئ. چېرې چې اوسېږئ. هلته څوك د نشې کار و بار پیل نه کړي، که په څ اشتباهي یاست، هغه قانون ته وسپارئ.
۱۰- نوو ځوانانو ته په کار ده چې د چا د غلطو خبرو پیروي و نه کړي، که په ټولګي، ښوونځي او یا پوهنځي کې بې دا ډول خلك وي، چې دوی نشه کولو ته هڅوي، هغوی دې څارندویو (پولیسو) ته وروپېژني

## حکومت څه کولای شي؟

۱. حکومت ته په کار دي، هغوی چې په بشپړ ډول له نشې څخه ښه شوي دي، د کار زمینه برابره کړي، چې هغوی د بیکارۍ او روحي فشارونو له کبله بیا نشې ته مخه و نه کړي.
۲- دا ډېره مهمه ده چې د څارندویو (پولیسو) د پلټنې په ترڅ کې که کوم نشه راوړونکي مواد لاس ته راځي، هغه سمدلاسه د لوړ رتبه مامور په مخکې ضایع او وسوزوي، چې د ځینو نورو کارکونکو د ګټې او یا مزې څکلو د احساس نه کبله یې څوك د ځان له پاره استعمال نه کړي.
۳- هغوی چې د منشیاتو کاروبار کوي، ډېرې سختې سزاګانې دې ورته وټاکل شي او عمل دې په وشي، د واسطې او بډو (رشوت) په زور باید هغوی پرې نه ښودې شي.
٤- د دولت له خوا باید د کوکنارو په کرنو بندیز ولګېږي، که نه دې لارې کنترول نه شي، له هغوی نه باید فصل راخیستل شي او له مینځه یوړل شي او یا په ښه لاره کې استعمال شي.

پای






## خلك ولې نشه كوي؟

دا چې خلك ولې نشه كوي ډېره مهمه پوښتنه ده، د هغې اسباب او عوامل عبارت دي له:

پرته له زحمته د پيسو لاس ته راوړل، كيداى شي د غلط عادتونو له پاره استعمال شي.

ـ نوي زلميان اكثرا د ملګرو او خپلوانو په وسيله چې ورسره تګ او راتګ لري مخدره موادو ته لاره پيدا كوي. په پيل كې يوازې په دې نوم چې "مزه ئې وڅكه " شروع كوي او وروسته ئې روږدي كيږي.

ـ هغوې چې نشه يېز مواد خرڅوي، د خپل كار د ښه والي له پاره ئې په پيل كې اكثر ځوانانو ته وړيا وركوي، او كله چې روږدي شول بيا ئې پرې پلوري.

ـ ماشوم ته د مور او پلار نه پاملرنه په هغوى كې د محروميت احساس پيدا كوي، او د روحي ستونزو سبب كيږي چې ممكن اولادونه ئې د نشې لورې ته مخه كړي.

ـ ځينې وختونه جنسي ستونزې هم د اعتياد سبب كيږي، ځينې ځوانان فكر كوي چې ګوندې كوم جنسي تكليف ورته پيدا شوې دى، د ډير شرم او حيا له امله خپل تكليف چا ته ويلى نه شي، د ځينې دوستانو په غلطو مشورو عمل كوي او مخدر موادو ته مخه كوي.

ـ ځينې خلك چې د ضعيف طبيعت خاوندان وي، د ستونزو او كړاونو مقابله نه كولاى، د كړاونو او ستونزو نه د تېښتې له پاره په نشه كې غركيږي.

ـ ځينې وختونه ډاكټران خپلو ناروغانو ته خوب راوړونكې او ارام راوستونكې درمل توصيه كوي، چې د هغې پر له پسې استعمال د اعتياد سبب كيږي، ځكه نو په كار ده چې درمل بايد د ډاكټر د توصيې مطابق استعمال شي، چې د روږديدو سبب نه شي.

ځينې وختونه له دوستانو يا ګاونډيانو د درملو د صفتونو په اوريدلو، درمل استعمالوي چې كېداى شي په دغو درملو كې اعتيادونكې درمل هم شامل وي.

# د نشې اغیزې

## جسماني اغیزې

مورږ ټولو ته څرګنده ده چې نشه د انسان روغتیا زیانمنوي. دا چې نشه ییز مواد څنګه په روږدي (معتاد) خپله زهرجنه اغیزه کوي، د هغې د استعمال پر طریقې یا لارې پورې اړه لري.

* هغه نشه ییز مواد چې د خولې له لارې استعمالیږي،له هر څه نه مخکې په معده اغیزه کوي او له هغې وروسته نور غړي متأثره کوي، چې په دې ډله کې اپیین( افیون، تریاك)، بنګ او شراب شامل دي.

* هغه مواد چې د سګرټ په څیر څښکول کیږي او یا په سګرټو کې اچول کیږي له هر څه مخکې په سږو ناوړه اغیزه کوي چې په دې ډله کې سګرټ، هیروئین، چرس، ماریوانا او نور راځي.

* هغه نشه کوونکي مواد چې د پیچکارۍ یا سرنج په وسیله وجود ته داخلیږي، په پوستکي، عضلو، ینې، اعصابو او زړه اغیزه کوي چې په دې ډله کې مورفین، پیتدین او هیروئین شامل دي.

* د ځینې نشه راوړونکو موادو استعمال لکه د پوزې نسوار، د پزې د پردې د سوري کیدلو او ځیرې کیدلو سبب کیږي، چې له دې لارې ممکن ډیر واړه او کوچني اجسام (ځیزونه) مغزو ته ورسیږي او د مغزو ډیر نري رګونه بند کړي چې ممکن د مړینې سبب شي. د پوزې له لارې پرته له نسوارو، هیروئین او کوکائین هم استعمالیږي.

### د انسان په جسم د ټولو نشه ایزو موادو مجموعي اغیزې

تقریباً ټول نشه راوړونکي مواد د معدې د تې سبب کیږي او ینه خرابوي. څرنګه چې د وینې د پاکیدو دنده د پښتورګو پر غاړه ده، نو د مخدره موادو ذرې له پښتورګو تیریږي  او د هغوی د خرابیدو سبب کیږي. د نشیانو اعصاب ډیر ضعیف وي، فکر او پوهه ئې ضعیفیږي او ماغزه ئې سم کار نه کوي. د نشه ئې بنځو ماشومان یا سقط کیږي او یا معیوب ماشوم زیږوي. سړې هم د جنسي نظره کمزورې کیږي یا ئ هیڅ اولاد نه کیږي او یا ئ اولاد لږ وي.

هغوی چې نشه کوي، له اوبو نه ډیر ډاریږي نو ځان مینځلو ته په اسانه نه

حاضرېږي، د وجود د ناپاکۍ له کبله په کې د پوستکي ناروغۍ زياتې ليدل کېږي.

## روحي او رواني اغيزې ئې

پرته له جسمي تکليفونو نشه يي د روحي ستونزو هم ښکار کېږي:
* څرنګه چې هغه پوهيږي چې غلط کار کوي، نو.هڅه کوي چې دغه کار له نورو نه پټ وکړي، هميشه ډاريږي او ځان له خلکو نه ګوښه ساتي.
* نشه يي زياتره بدو کارونو ته مخه کوي، مثلا دروغ ويل، په درواغو لوړه کول( قسم خوړل)، غلا او نور. ځينې وخت د يو خوراك نشې له پاره لوې لوې جرمونه کوي.
* د نشه يي ماغزه ضعيفه کيږي، د لوست او ليکلو قدرت يي کمزورى کيږي او د ښه او بد تميز نه شي کولی‌ې.
* له نشه يانو سره يې ملګري او خپلوان تلې راتلې نه کوي، نشه يي دومره نوم بدى وي چې خلك ورسره له کيناستلو هم ډډه کوي، خلك ډاريږي چې ترې پيسې و نه غواړي او يا ورسره په دې بد مرض کې شريك نه شي.
* څوك يې په کار او وظيفه نه ګماري که په وظيفه ي وګماري هم ، زر ئې له کار نه ګوښه کوي، ځکه خپله دنده په ښه ډول نه شي پاى ته رسولاې، هميشه ستړى او ستومانه وي او له کار څخه د تيښتې په لټه کې وي.
* کورنى ژوند ئې برباد شوى وي، د خپلې کورنۍ حقوق په ښه ډول تر سره کولاى نه شي، هغه څه چې لاس ته راوړي، هغه په خپله نشه لګوي . که د کار او مزدورۍ له لارې ورته څه پيدا نه شي، د خپلې نشې له پاره هر ډول خراب او غير قانوني کار لکه غلا او نور کوي.

## نشه راوړونکي مواد کوم يو دي؟

نشه راوړونکي مواد د منشياتو په نوم يادېږي او منشيات په درې ډول دي:
الف: طبيعي
ب: نيم کيمياوي
ج: کيمياوي

## الف: طبيعي منشيات:

هغه دي چې په زمکه کې کرل کيږي لکه : بنګ، کوکنار ، کوکين

## ۱. بنګ:

چې له هغې څخه (۱) بنګاوه (۲) چرس،(۳) ماريوانا او (٤) د چرسو تيل جوړيږي.

## ۲. کوکنار

له کوکنارو څخه (۱) اپين( افيون - ترياك) ، (۲) مورفين، (۳) هيروئين (٤) مدك او (٥) چنډو جوړيږي( د چنډو او مدك په اړوند معلومات په راتلونکو مخونو کې لوستلای شئ)

## ۳. کوکين

د کوکا په نوم ونې له پاڼو څخه لاس ته راځي، چې د جنوبي امريکا په سيمو کې زرغونيږي.

## ٤. داتوره:

چې د هغې زړي او پاڼې د نشې له پاره استعماليږي.

## ب- نيمه کيمياوي يا نيمه مصنوعي منشيات:

په طبيعي ډول پيدا کيږي خو د ځينو ساينسي طريقو په وسيله له ځينو نورو موادو سره ګډيږي او له هغوی څخه نور قوي او تيز نشه راوړونکی مواد

راوړونکي مواد جوړيږي. چې په چې اړه په کتاب کې پوره معلومات شته.

### ۱. مورفين:

له کوکنارو څخه اپيم (اپين، ترياك) او له اپيمو څخه مارفين لاس ته راځي په روغتونونو کې د درد د تسکين له پاره استعماليږي ، خو د دې درملو روږدي، هره ورځ هغه ځان ته پيچکاري کوي.

### ۲- هيروئين

په مورفينو کې د ځينو کيمياوي موادو د ګډولو په وسيله هيروئين جوړيږي، د هغې اغيزې تقريبا مورفين ته ورته دي.

### ج- کيمياوي منشيات:

چې مختلف ډولونه لري، چې د ځينو نومونه دادي:
الکول(شراب)، پت
يدين، ميتادون، کوډين، ميندرکس او نور.

# د مختلفو نشه راوړنکو موادو اغيزې

### بنګ Bang

بنګ يو ډول بوټی دی چې په تاوده موسم کې په خپل سر زرغونيږي، تيز بوې لرې چې دې ته وچ، ځنګلي او يا ليوني بنګ وائي، په ځينو سيمو کې خلك بنګ کري او له هغې نه نشه ييز مواد جوړوي، د بنګو له شنو پاڼو، دانو او ځينو نورو موادو له يوځاې کولو څخه د بنګاوي په نوم شربت جوړوي. د جنوبي اسيا خلك له پيړيو راهيسې ددې نشې روږدي دي ځينې خلك بنګ په پکوړو کې اچوي او بيا ئې استعمالوي.

## د بنگو اغیزې:

د بنگو نشه په شروع کې لږه وي، ورو ورو ډیریږي. د هغې استعمالونکی ډیرې اوبې ربطه خبرې کوي او اپلتې وایي. که ډیر استعمال شي، سړی بې سده کیږي او څو ساعته ویده وي.

## چرس یا حشیش (Hashish):

چرس چې د حشیش په نوم هم یادیږي له بنگو نه لاس ته راځي، چې له ډیرو مضرو نشه راوړونکو موادو له ډلې څخه دي. کله چې د بنگو داني ښې پخې شي، هغه ریبي. بیا یې وچوي او له هغې نه چرس جوړوي، د چرسو د جوړولو له پاره بیلابیلې لارې شته، خو عامه طریقه یې له یو توکر څخه د غلبیل کوله ده، یو شمیر خلك په هغې کې خینې نور مواد هم گډوي.

## د چرسو اغیزې:

چرس په روغتیا بده اغیزه کوي. چرس په چلم کې څکول کیږي، ځینې یې لوگی د یوې نیچې په وسیله کش کوي، خو په دې وختونو کې یې د سگرټ په وسیله څکول عام شوي دي. د چرسو او تمباکو مضر مواد دواړه د سږو د خرابیدو سبب کیږي. دا ماده د وینې سره کرویات له مینځه وړي، چې له هم دې کبله پوستکی توریږي، د سترگو شادابي له مینځه ځي. هغوی چې چرس څکوي، په شروع کې ډیر کار کوي، خو له نشې څخه لږ وروسته ور ته عمومي سُستي پیدا کیږي او هیڅ کار نه شي کولای، له همدې کبله په ورځنیو چارو کې له نورو څخه وروسته پاتې وي. د نشې په وخت کې یې سترگې سرې او غتې ښکاري، خوبوړی وي، که په خپل حال پریښوول شي، د ډیر وخت له پاره ویده کیږي.

## د چرسو تیل:

زموږ په هیواد کې یې استعمال دومره ډیر نه وي، په اروپایي هیوادونو کې زیات استعمالیږي، ویل کیږي چې تیزه نشه لري.

## ماریوانا:

د بنګو پاڼې په تبې وچوي او وروسته يې په سګرټ يا چلم کې څکوي

## کوکنار:

د کوکنارو بوټي لکه د بنګو په خپل سر نه زرغونيږي، بلکې کرل کيږي د کوکنارو د غوزې دننه ورې ورې دانې وي چې خاشخاش بلل کيږي خاشخاش ټول پېژني چې په ځينو خوړو کې ترې کار اخيستل کيږي، او هم ترې درمل جوړيږي، خو له دې ښه او ګټور بوټي څخه ځينې خلک بده ګټه اخلي او هغه د نشې له پاره استعمالوي.

## اپيم (افيون يا ترياك) Opium:

هغه وخت چې د کوکنارو غوزه يوې خاصې مرحلې ته ورسيږي، هغه د يوې ـ



د کوکنارو کرونده

خانګړې الې (نوکې) په وسیله زخمي کوي، چې له هغې نه سپینه شیره را بهر کیږي. کله چې دا شیره لږه وچه او نسواري رنګه شوه، هغه راټولوي، دا راټوله شوې ماده اپین یا تریاک دي.

د کوکنارو د غوزې له جوړولو څخه هم نشه راوړونکې ماده جوړیږي. د اپینو نشه له پیړیو راهیسې رواج ده. تریاک د ځینو درملو لازمي برخه ده. ځینې کلیوالې ښځې خپلو ماشومانو ته لږ څه اپین ورکوي چې بیده شي، او ځان نورو کارونو ته وزګار کړي. د ځان د ارامولو له پاره ماشومانو ته زهر ورکول ډیر لوی حماقت دی. ډیر اوریدل شوي دي چې میندې په ماشوم لږ اپین ډیر کړي او د هغې د مرګ سبب شي. هغه میندې چې له کوچنیوالي نه خپل ماشومان د اپینو په وسیله ویده کوي، له همهغه کوچنیوالي څخه یې ماشومان د اپینو روږدي کیږي، چې د هغوی د دماغي ودې د وروسته والي سبب کیږي.

## په روغتیا باندې د اپینو اغیزې:

لکه د نورو نشه راوړونکو موادو په څیر، اپین هم په روغتیا ناوړه اغیزه کوي. د اپینو نشه په وجود کې د یو ډول زهرجنې مادې د پیدا کیدو سبب کیږي، اپیني سړی همیشه قبض وي، لږخوراکی (بې اشتها) وي، فکر یې پریشانه وي. د فکر او پوهې قوه یې کمزورې کیږي. زړه یې کار ته نه کیږي، له هر څه بې خبره په خپله نشه کې ډوب وي.

### مدك:

د اپین شیره جوړوي بیا یې د بوسو یا پلالي سره یو ځای کوي او د تمباکو په څیر یې په ځانګړو (مخصوصو) چیلمونو کې لوګی کوي، چې د مدك په نوم یادیږي.

### چنډو:

د نشه راوړونکو موادو ډیر بد ډول دی. اپین ښه پاخه کړي او بیا له هغې څخه شیره جوړه کړي، بیا دا شیره په یو ډول ځانګړي چیلم کې لوګی کوي او څکوي یې. په هغو سیمو کې چې اپین ډیر کرل کیږي، هلته چنډوخانې هم

# د نشې زهر

- عادت او نشه
- خلک ولې نشه کوي
- د نشې ډولونه



- ډېرو ګټونزیانونه
- روحي درملنه
- جسماني درملنه
- خلک ولې شراب څښي؟

کتاب نه اصلي نسخې نه چې په اردو ژبه نیرالی کتابین خپور کړی و.
ژباړل شوی دی

# د نشې زهر




لیکونکې زبیده سلطانه
ژباړن: ډاکتر محمد فرید بزګر
۱۳۷۷ هـ . ل / ۱۹۹۸ ع

## د کتاب پېژندنه:


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د نشي زهر |
| ليکونکي | : | زبيده سلطانه |
| ژباړن | : | ډاکټر محمد فريد بزګر |
| ايډيټ | : | محمد داود وفا |
| خپرونکی | : | د او.ار.ای.انټرنېشنل د خپرونو څانګه |
| کمپوز | : | فريده، ختيځ کمپيوټر |
| اهتمام | : | قدرت الله ملکزی |
| شمېر | : | ۲۰۰۰ ټوکه |
| د چاپ نېټه | : | ۱۳۷۷ هـ .ش/ ۱۹۹۸ ميلادي |

P68/98/P

# فهرست